

د ظلم نښه وه چې تاته راغلم زه په ژړا
دا نیاره سترګې مې لا نه شولې تراوسه رڼا
ای پېښوره د تا قار ربه زه هیر سکړمه
که زما وروڼه دي رهې کړل یو ځل بیا یه خندا

# وطن ته !

(۱)

زه خوړم قسم د تا په لوړو د ننګو غرو وطنه
د تا په ښکلو ښنوا و پاکو سردرو وطنه !
ستا هره شګه به بدله په ګوهرو کړمه
پاک به دی ساتم په هر وخت کښې له بدو وطنه

●●●

(٣)

که د دنیا په څه شي جوړ رانه ختم کړي
ته لیونی یمه د تا په محبت وطنه
د تا ذره ذره د خاوري به زه هیره نکړم
خوږیم ژوندی پالم به خپل ملي غیرتونه



(۳)

له تودې غېږې نه دې زه شومه جلا وطنه

دا چې را او وتم له تا نه په ژړا وطنه

خو باوري یم چې ستا غېږ ته به بیا راشم

پاتې ژوندون مې تېرومه ستا په هوا وطنه



(۴)

داچې ژوند وت شولو زما هسک اوښ وروکښن

داچې تل وینې د زړه خورم پدې سفر وکښنه

داچې روانې مې تل اوښکې له سترګو شی

داستا بیلتون مې دی په زړه لکه خنجر وکښنه



# افغانستان ته

(۱)

په دنیا مې یو ته یې ښکلی چمن
څه به کړم دنیا چې ته نه یې وطن!

تا کنبې پټه زما د ټول ژوند رڼا
څه به وا خلم خوند د نور وله ګلشن



(٢)

ښکلی نوم ښکلی دی شان افغانستانه
سیال دی نشته په جهان افغانستانه
ښایست دی ستا په لمنو کښې پټ شوی
زړه مې پرک دی له ارمان افغانستانه!

(٣)

ستا بیلتون راکړل په زړه زخمونه
نه پرېږدي ما ستا خواږه یادونه
درمان ته یې ستا لیدل ماته هر څه دی
کړم په ځار درته د پېر ښکلي جنونه

# وطن

زما ګران وطن جدا دی څکه ژاړمه
راته یک له هر بلا دی څکه ژاړمه
زه خپل سر به ځاروم تری روڼ قوم یې
تیاره شوی په رڼا دی څکه ژاړمه

# ای پلاره!

(۱)

ستا تول صورت زما په نظر کرځي

څکه ساره اسویلي خولی نه غورځي

سیخ کراری مي زړه ته نه شي خدایه

کله مي زړه مایوس شي کله ورځي



(۲)

بیله تا پلاره زما ژوندون به څه وي
زخمي زړګی له سکون به څه وي
بې تا دنیا سراسر تورا و غم ده
زما پېره ژوند کښې اوښتون به څه وي

بسم الله الرحمن الرحیم

وطن تش د کانو، بوټو، غرونو، رغونو، باغونو او ورشوګانو نوم نه دی؛ بلکه وطن د یوه احساس نوم دی، د یوې مینې نوم دی او د یوې هغې درنې مور نوم دی چې خپل خوار بچیان په خپله له مینې ډکه او نرمه غېږ کې لوبوي، لویوي او بیا د تل له پاره آراموي.

هو! وطن هم مور، هم کور او هم ګور دی؛ کله چې څوک په ظلم او زور، په ستم او جبر له دې پستې او خوږې غېږې نه بېل شي نو بیا د وطن خوار ـ یادونه سوې آهونه او فریادونه شي، د زړه لمبې او اورونه شي، او د بېلتانه نارې او غږونه.

حساس دماغونه او د لوړ احساس نه ډک مغزونه د وطن د بېلتانه دې آهونو، فریادونو، نارو او غږونو ته د شعر رنګ ورکوي او تل پاتې نغمې ترې جوړوي.

د افغان مور درد بېدلي لور نجیبه وجدي وردګ چې د وطن د مور له پستې غېږې نه داسې وخت بېله شوې چې

(۳)

څومره به کړمه ورځې شپې انتظار؟

څومره به زړه ته ورکومه کرار؟

لارې ته دوې سترګې څلور شوې زما

په خیال دیدن زمونږ دنیا کړه ګلزار



(٤)

کله چې شوودرسنه جل اپلاره
راته دنیاوه په ژړا پسلاره
هرلورته دتنه د سرو ا سرو او سیکوولار
دي بدتنه لاهوموکره خندا پلاره

***

(۵)

د انتظار کړي تر څو تيرېږي
په مخ د اوښکو سلسلې تيريږي
د زړګي آه د زغورتن چاره ده
په چرت د غم و رځې اوشپې تيريږي



(٦١)

وی کمبدلی به دبل له توره
ختک په ظلم شوی جدا له کوره
وي يه خاطر دي انديښنې پريشان
تن يه دي سوزي د غيرت له اوره

****

(۷)

تا سر نیولی دی دمیني په ننګ

له دښمن نښولی هیڅکله په څنګ

د تا په لوره عقیده وبا ره هر

یم دی ترڅنګ د آزادی په جنګ



ستا په مینه کښې هر گل ته شو نظر زما
تازه شو له پېرې خیال د ستړي سر زما

# زما سفر

راته څه شوي اې زما د ژوند ارمانه
ستا بېلتون راته تریخ کړی دی سفر زما



گل خو خپل حسن گرځولی دی گل

ترینه نګار سړی غم ځپلی بلبل

گل چې په خزان او پانه پانه سی ،

# مزی، چرچی

کوری په وینو باندی رنګ افغانستان یادی تې

ګل او ګلزار یې د ستم په اور خزان پاتې دی

تاسو کوئ مزی، چرچی هغه شو هیر درنه

ښکلی چمن یې شو بیدیا او سخارستان یادی تې

# د کابل مُلالونجونو ته

کړئ د کابل ملالونجونو ته نظر خلکو!
بیا خو تری واخلی څه درسونه د هنر خلکو!
چې لوپټې یې کړې څنځیر د هر افسر په غاړه
او د غیرت خولۍ یې کیښودی په سر خلکو
د بل نوکر افسر ولاړ ورته سر ښکته وو تل
د وی کړو روان د آزادی ملی لښکر خلکو
د سر په بیه په ټانکونو ور روانی شولې
جنګی ناری یې کړی د الله اکبر خلکو!

# څیړې ګریوانونه

راډک مې زړه شو خدایه څومره ارمانونه دي نن
په زړه مې پاتې د امید څومره داغونه دي نن
په ژړېدلې دنیاګې به نور څه وناګتم
د ژوندانه حاصل مې دغه زېږګلونه دي نن
ارمان به پاتې شي په زړه به مې داغونه کېږدي
پرې راټول شوي دغه ټول سوي دردونه دي نن
یو وطن وران شو بیا بېلتون ورسره مل شو زموږ
بل په ملت مې لاتې پایه ستمونه دي نن
کیله به وکړم له چا اوښکې به مې څوک ووینې؟؟
خاونده جوړ چې هر هر چېرته د پیر غمونه دي نن
نه به شي اوښکې زما وچې نه ګریوان ګنډلی
د هر افغان له غمه څیړې ګریوانونه دي نن
که یو درد وای نو موږ به صبر پرې کولو مدام
چاپېر سلګۍ دي ورکه څکه ګېرونه دي نن
تباهي کړه اچولې ده په ټوله سیمه
زموږ له ژوندانه راپیدا دا سیلابونه دي نن



دي په دې له هیښې دکه ښځکې پاتې کېږلوته د یر وخت نوره هم اړه درلوده او ددې ښځې مینه او عطوفت یې پکار ؤ نو په دې ښځه پسې ددې آهونو، فریادونو، نارو او ښځوبنو د ثاندو شعرونو او سویو ساندو ښه غوره کړې او دا « دوطن یاد » نثرې جوړشوی دی ، زه په خپل وار ددې دا پاک احساس ستایم او د ادب په نړۍ او خصوصاً د ملي ادب په دنیا کې یې ښې او روښانه آینده ته سترګې په لاره یم !

خدای دې وکړي چې ددې د وطن د آزادۍ پاکه هیله ژر تر ژره تر سره او یو ځل بیا په افتخار، سرلوړي او خوښۍ ددې مهربانه مور ښځې ته ورشي او ګټور خدمتونه یې وکړي .

ح ، رفیع

۱۰/۶/۶۳

پښنی

را به شي د آزادۍ بیا خنداګانې
شي به ورکې د غم سوې ژړاګانې

# آرزوګانې

لوی خاوند زموږ مل او مدد ګار دی
سرته رسي به زموږ آرزوګانې

بیه: ۳
درې روپۍ

خطاط: شاه محمود پتنګ

# د پردیسي ژړا

نن مې خوارهٔ یادونه بیا د ګلستان ژړوي
په وینو رنګ وطن مې خوږ افغانستان ژړوي
چې د غیرت په غولي لوی وود وطن په غېږ کښې
مادرپه دره وچې شونډې افغانان ژړوي
په ښته وطن کښې د پردی وطن پېغور شومه زه
په خپل سمسور وطن مې کله اورد مخزات ژړوي
د بلبلانو چغار نه اورم هدت شولو د یر
داچې چوپتیا او ویران حال مې د بنیادمان ژړوي
چې په غرور به ګرځیده د خپل وطن په غرونو
په بد حالت کې کیږمې هغه د روند انسان ژړوي
چې د خوارهٔ وطن د نوی ژوند خوارهٔ شول ترورک
اسیرې شونډې اوسرې سترګې یتیمان ژړوي





# وطنه !

کله چې ما وته لیدل بیا د تا ښکلي غرونه

خدایېږو په زړه مې پرېوتل انبار انبار غمونه

یوه زه څه یمه د تا دي په هر ځای غمونه

بې تا به کله شي خوشاله دردېدلي زړونه

# افغانستان ته

آه چې دی خوږ دلید وما ته ارمان راځی
دبل وطن په شبو ځایو کله درمان راځی
ته مې یې مورته مې یې کورته مې یې کور وطنه
بې له تا کله ما ته دلته بهاران راځی



# زما وطنه !

ماوی : درنه به هیڅکله نشم جلا وطنه !

خپل سر به ورکومه ستا په سر زما وطنه !

نه پاتی شوم په تا لګښي نه هي سر له تانه ازار شو

اوس ګرځم دی بیلتون کښي په ماتم ، ژړا وطنه

# کابلەدا!

دبیلتون سوی لیبی دی شوی زماترخان چاپیری

سوحُوی می لکەدرە دالیبی دی تیزی دەبیری

پەهیچ شکل می دردمندزرەبی لەتانە آرام نشو

نەبەکرمەستادخوبکوتحوخپی پشکی هیری

# هېواده!

ژوند مې تیرېږي دلته په غم کښې
سباکومه شپې ستا په ماتم کښې
ستا سرې - سرې اوښکې مې نه هېرېږي
نن یې ته څومره په لوی ستم کښې

# پېښوره !

ستا په غیرت کي مي ورونه چي پراته دي لوړ لوړ
ستا هوایي میلمنه ده پېښوره کور په کور
څوروه یې مه هیڅکله چي راغلي دي ستا غیرت ته
درنه ځي به خپل وطن ته چي راغلي نن په زور

# پېښور ته !

نن په تاکښي ناست د لوی افغان د ستر گو تور دی
دلته چې راغلی دی میلمه د تا په کور دی
هله به په خوښه درته درومي پېښوره
لوړ به شو ها بیرغ کړي چې لویدلی په وچ زور دی





نجیبه وجدی ،،وردګ،،

---

۱۳۶۲ هـ ،ش

# د وطن یاد

نجیبه وجدی «وړنګ»

۱۳۶۲ هـ.ش

# اهداء

د هغو پاکو شهیدانو روحونو ته چې
د دین او وطن د آزادۍ له پاره یې په
میړانه سرونه داوکړي دي .

